# طلوع افغان

طلوع افغان

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

د امتیاز څښتن؛ د کندهار اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسیس کال: ۱۳۰۰ لمریز، سه شنبه ۱۲/صفر المظفر/ ۱۴۴۵ هـ ق، ۷/وږي/ ۱۴۰۲ ل کال - ګڼه (۳۷) Issue 37 Tuesday-29-August-2023


**نبوي مرغلري**

رسول الله (ص) فرمايلي دي:

ژباړه: دانسان درې دوستان دي:

۱- مال دئ، چې د روح تر قبض پورې ورسره وي.

۲- خپلوان دي چې تر قبر پورې ور سره وي.

۳- عمل دئ، چې تر قیامته پورې ورسره وي.

«رواه البخاري»

## د رياست الوزرا اداري مرستيال: اسلامي امارت خلکو ته د اسانتياوو رامنځته کول خپل مسؤليت ګڼي

د رياست الوزرا اداري مرستيال مولوي عبدالسلام حنفي د سرپل ولايت له يو شمېر سيمه ييزو مسؤلينو سره په کتنه کې وويل، اسلامي امارت د ستونزو له منځه وړل او خلکو ته د اسانتياوو رامنځته کول، خپل مسؤليت ګڼي.

د سرپل ولايت امنيه قوماندان مولوي عبدالبصير مظهري په کتنه کې د ياد ولايت دامنيتي وضعيت او سيمه ييزي حکومتولۍ په اړه د رياست الوزرا اداري مرستيال ته راپور وړاندې کړ او وويې ويل، سيمه ييز مسؤلين خلکو ته د خدمت رسولو او په دې ولايت کې د امنيت د ټينګښت له پاره تل هڅې کوي او د اسلامي امارت له مشرتابه څخه يې غوښتنه وکړه، چې د سرپل ولايت په ليرو پرتو سيمو کې د پراختيايي پروژو تطبيق، د کانونو استخراج، داوبو بندونو جوړولو، ښوونيو او روزني، د مجاهدينو وضعيت ته رسېدنه او د دې ولايت خلکو ته د کار زميني برابرولو ته ځانګړې پاملرنه وکړي.

د رياست الوزرا اداري مرستيال د اشغالګرو په وړاندې مبارزه کې د سرپل ولايت د خلکو د زيار او سربښندنو ستاينه وکړه او وويې ويل، ځايي مسؤلين د غوره خدمتونو وړاندې کولو، نېک چلند او د امنيت تأمين مکلفيت لري او په دې برخه کې بايد هيڅ ډول سستي و نه کړي او و يې ويل، اسلامي امارت د ستونزو له منځه وړل او خلکو ته د اسانتياوو رامنځه کول، خپل مسئوليت بولي او د امکاناتو په چوکاټ کې به د يادو مواردو په اړه اقدام وکړي.

## ازبکستان د قوش تېپې کانال د کارونو د پرمختګ په برخه کې مرستې ته چمتو دئ

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مشرتابه کابل ته له راغلي ازبکستاني پلاوي سره په کتنه کې د دواړو هيوادونو ترمنځ، د کرهنې په برخه کې د اړيکو پر پياوړتيا او د دواړو هيوادونو د پانګه والو د ستونزو د حل په اړه خبري وکړې. ياد وزارت د يوې خبرپاڼې په خپرولو سره ويلي، چې د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت سرپرست مولوي عطاء عمري په دې کتنه کې ويلي، افغانستان او ازبکستان له يو او بل څخه متأثر هيوادونه دي او د کرهنې په برخه کې يې د يو او بل د تجربو پر شريکولو ټينګار وکړ. سرچينې زياته کړې ده، چې مولوي عمري همدارنګه ياد پلاوي ته د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت د کاري برخو په اړه معلومات ورکړل او له هغوی څخه يې د اصلاح سوو کرهنيزو تخمونو او د خوراکي تخمونو په برخه کې د افغانستان له خلکو سره د همکارۍ ۴مخ

## د کندهار ښاروالۍ له لوري پر بېلابېلو رغنيزو پروژو کارونه روان دي

د شنبې په ورځ د کندهار ښاروالۍ له لوري د ښاراړوند، په نهمه ناحيه کې د ۸۰۵ متره په اوږدوالي او اته متره په بروالي سره د درو کوڅو او يو پلچک د جوړولو چارې پيل سوي، چې رغنيزي چارې به يې په شاوخوا پنځه نيمو مياشتو کې بشپړې سي او ۲۲۵ کسانو ته په کښې د کار زمينه هم برابره سي.

د پرانستني په مراسمو کې يې د ښاروالۍ مرستيال مفتي قدرت الله الوصال وويل، زموږ مشران د خبرو پر ځای، په عملي توګه کار کوي او غوښتنه يې وکړله، کوم کسان چې په دې پروژه کې کار کوي ۴مخ

## وسلې پلورونکي او يو شمېر غله نيول سوي دي

د کندهار ولايت د امنيې قوماندانۍ وياند حافظ صابر باختر خبري آژانس ته ويلي، امنيتي ځواکونو د پنځمې حوزې اړوند، په ښورانداm سيمه کې د کشفي معلوماتو پر اساس، دوه تنه د درو ميلو کارموليانو، د چريکي هاوان د ۴۰ او ۱۳۵۰ فايره له ثقيل مرميو سره چې په يو لوکسل ډوله موټر کې يې بار کړي وو، نيول سوي دي.

د صابر په وينا، نيول سوو کسانو غوښتل، چې د کندهار ولايت د سپين بولدک ولسوالۍ څخه هلمند ولايت ته وسلې او نور مهمات انتقال کړي.

همداراز په کندهار کې هغه غل نيول سوی، چې ټيليفونونه او پيسې به يې غلا کولې. ۴مخ

## ۱۶ ټانکره بې کيفيته تېل ايران ته وګرځول سول

د فراه ولايت په شېخ ابونصر فراهي بندر کې ۱۶ ټانکره بې کيفيته تېل بېرته ايران هيواد ته وګرځول سول.

د دې ولايت په شېخ ابونصر فراهي بندر کې د سټنډرډ ملي اداري آمر مولوي عطاءالله ابرار آغا باختر آژانس ۴مخ

## د ښار د ترافيکي بې نظميو کنټرول تر سره سو

په کندهار ښار کې امنيتي ځواکونو او ترافيکو په ګډه د ترافيکي بې نظميو کنټرول تر سره کړ.

د کندهار ولايت د امنيې قوماندانۍ وياند حافظ صابر باختر آژانس ته ويلي، د ياد کنټرول په پايله کې هغه موټر سايکل چلوونکي چې تر ۱۷ کاله کم عمر يې درلودی، تېز رفتار، پايه کشي او بې اصوله چلونه يې کوله، موټر سايکلونه يې د درو ساعتونو له پاره توقف سوي دي.

د يادوني وړ ده، چې د ترافيکو مديريت د مسؤلينو له لوري د داسې کړنو مخه نيول کېږي او والدينو ته توصيه کوي، چې تر قانوني کم عمره کشرانو ته وسايط په لاس ور نه کړي.

## ۸۲۷ تنه د سپين بولدک له لاري هيواد ته راستانه سول

له پاکستانه ۸۲۷ تنه د کندهار ولايت د سپين بولدک ولسوالۍ له لاري هيواد ته راستانه سول.

د کندهار د کډوالو چارو رياست اداري مرستيال مولوي نقيب الله مؤمن آغا ويلي، د سپين بولدک ولسوالۍ له لاري د زمري مياشتي له ۲۹ مې بيا تر ۳۱ مې نېټې پوري ۱۴۲ افغاني کډوالي کورنۍ چې ۴مخ

## د زاړه ښار اړوند نارنج ماڼۍ د لرغونو ساحو څخه ليدنه وسوه

د کندهار د اطلاعات او فرهنګ رياست اړوند، د هنر او فرهنګ آمر د يکشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ويلي، د سيمې د اوسېدونکو په ملتيا د نارنج ماڼۍ د حريم او غير منقولي ساحې د غصب مخنيوي او خپل سرو کيندنو څخه د مخنيوي په موخه يې د نارنج ماڼۍ د بېلابېلو ساحو څخه ليدنه کړې ده.

د هغه په خبره، په ياده ساحه کې د خپل سرو جوړو سوو کورونو اوسېدونکو ته سپارښتني وسوې، چې د نارنج ماڼۍ په حريم کې د غصب، نوو ودانيو د جوړوني او خپل سرو کيندنو څخه مخنيوی وکړي.

د يادوني وړ ده، چې تر دې مخکې هم د اطلاعات او فرهنګ رياست مسئولينو په وار– وار له دې ماڼۍ څخه ليدنه کړې وه.

## د کندهار پوهنتون سرسبزۍ ته ځانګړې پاملرنه کېږي

د کندهار پوهنتون مسئولينو ويلي، اړتيا ته په کتو سره په پوهنتون کې د سرسبزۍ له پاره کارونه چټک سوي دي، هر پوهنځي ته نژدې سرسبزه ساحې جوړې او د محصلينو د ناستې او مطالعې له پاره هم ځانګړي ځايونه جوړ سوي دي او تر څنګ يې سولر څراغونو د يادو ساحو ښکلا نوره هم زياته کړې ده.

همداراز د کندهار پوهنتون مسئولين هڅه کوي، چې د ياد پوهنتون د محصلانو له پاره لا ډېرې اسانتياوې رامنځته کړي.

## په کندهار کې د بدني ښکلا سيالۍ تر سره سوې

د کندهار د سپورټ او بدني روزنې رياست وياند نذير احمد نوري باختر آژانس ته ويلي، د کندهار په سطحه د بدني ښکلا د غوره لوبغاړو د ټاکلو په هدف، د ۷۰ ورزشکارانو ترمنځ، د بدني ښکلا سيالۍ تر سره سوې.

د يادو سياليو ليدني ته د کندهار د بدني روزنې او ورزش رئيس حافظ محمود آغا بشر، د ځوانانو چارو آمر حافظ حمدالله سعيد، نور ورزشي مسئولين او عام خلک ورغلي وو. ۴مخ

## يووالی د ولسونو د پرمختګ په لاره کې لومړنی شرط دئ

بريالی "فيضي"

د اسلام او انسانيت ستر لارښود حضرت محمد صلی الله عليه وسلم مديني منورې ته تر هجرت کولو وروسته د يوې اسلامي ټولني او حکومت بنسټ کښېښاوه، په دې لاره کې يې تر ټولو د لومړنيو کارونو څخه داو، چې د مکې مکرمې څخه يې د راغلو اصحابو کرامو (مهاجرينو) او د مديني منورې د اوسېدونکو اصحابانو (انصارو) ترمنځ د ورورولۍ تړون رامنځته کړ.

د مديني منورې انصار د (اوس او خزرج) په نوم له دوو قبيلو تشکيل سوي وو، مديني منورې ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم په هجرت سره بل کار داوسو، چې د انصارو د يادو دوو قبيلو ترمنځ د دوستۍ تړون وسو، دا هغه دوې قبيلې وې، چې د جهالت په دور کې به يې د يو او بلويني څښلې، اما د اسلام په راتګ سره دا د وخت دښمنان رښتيني دوستان سول.

اسلام قوميت او قوم پرستي نه غواړي، اسلام د يووالي او ورورولۍ دين دئ، زموږ په خوږ دين کې تور پر سپين، سپين پر تور، عرب پر عجم او عجم پر عرب هيڅ اولويت نه لري، دا چې اسلام په ډېر لنډ وخت کې د نړۍ تر هر کونجه ورسېدی، د وخت دوو امپراتوريو (روم او فارس) ته يې ماتي ورکړې، لامل يې داو، چې اسلام د عربو په بې علمه او بې اتفاقه خلکو کې د يووالي او ورورولۍ تخم شيندلی و، هغوی يې د بې مهذبه ژوند څخه د يو متمدن ژوند څښتنان ګرځولي وو.

په هغه وخت کې د مسلمانانو ترمنځ يووالی د دوی د پرمختګ ستر راز و، خو بدبختانه نن ورځ د مسلمانانو په منځونو کې د پخوا په شان يووالی او ورورولي نه ليدل کېږي، نن ورځ اسلامي نړۍ پر شاوخوا ۵۲ ټوټو وېشل سوې ده، له بده مرغه نن ورځ زموږ د وروسته پاته والي او مظلوميت ستر لامل بې اتفاقي ګرځېدلې ده.

افغانانو! زموږ د هيواد د بدبختيو لوی لامل همدا بې اتفاقي جوړه سوې ده، اشغالګرو په پر له پسې ډول د افغانانو ترمنځ؛ د قوم، ژبې او مذهب په نامه د بې اتفاقۍ هڅې کړې دي، دې افغان دښمنه کړيو په تېرو کلونو کې د افغانانو د يووالي د له منځه وړلو له پاره له هيڅ ډول تخريبي کړنو څخه دريغ نه دئ کړی.

ګرانو هيوادوالو! که پرمختګ غواړو، بايد ږغ مو يو وي، که د نړۍ له پرمختللو هيوادونو سره سيال کېدل غواړو، بايد هدف مو يو وي او که د يو قوي افغانستان جوړېدل غواړو، بايد قوت مو يو وي.



## د طلوع افغان خبري

## نړۍوال دې د افغانستان په اړه روند قضاوت پرېږدي

د ملګرو ملتونو په امنیت شورا کې سفیرانو ته د دوی په وینا د تروریزم پـه وړانـدې د مبـارزې دوو جګپوړو چارواکو د داعش له لوري لـه نړۍ او افغانستان څخـه ګواښونو په اړه معلومات ورکړل سول، چې پـه کښې زموږ په هیواد کې د شلو ډلو شتون، د وسلو د پراختیا او د داعش د عملیاتي وړتیاوو د زیاتوالي ادعاوې بیا تکرار سوې دي.

دا په داسې حال کې ده، چې په تېـرو دوو کلونـو کـې د اسلامي امارت په راتګ سره په افغانستان کې د داعش زور اوبه سوی دئ، په یاده موده کې د اسلامي امارت د ځواکونو له لوري د ناقانونه وسلو او د داعش په وړاندې په سوونه عملیات ترسره سوي، چې پـه پایله کـې یې وسلې او مهمات نیول سوي او هـم د داعش عملیـاتي وړتیاوې له منځه وړل سوي دي.

پر ځای د دې چې د اسلامي امارت ستاینه وسي، چې په ډېرو کمو امکاناتو توانېدلي، د داعش کمبله ور ټوله کړي، بې لـه دې چې پـه دې برخـه کـې نړۍوالـو تـه کچکـول ونیسـي، پـر دې هر څـه سـر ببره، بیـا هـم د نړۍوالو له لوري منفي او بې سنده تورونه لګول کېږي.

نړۍوالو ته په کار ده، چې بایـد پـه افغانسـتان کـې لـه اسلامي امارت سره مثبت تعامل وکړي، په رسمیت یې وپېژني او د افغانانو کنګل سوې شتمني آزاده کـړي، دا ځکه چې د افغانستان اسلامي امارت عملاً دا پـه اثبـات رسولې ده، چې له دې خـاورې بـه هـیڅ کـوم هیـواد تـه خطـر نـه متوجـه کېږي، د داعـش پـه وړانـدې یـې ډېـر بریالی مقاومت کړی او په سیمه کې د یو باثباته هیـواد په حیث را څرګند سوی دئ.

په افغانستان کې روان یو څه وي، خو په غربي رسـنیو کې بل څه اورو. دلته د اقتصادي ودې له پاره زېربنایي پروژې پلې کېږي، اما غربي رسنۍ او سازمانونه بیا دلته د قحطۍ او اقتصادي رکود خبرې کوي، حال دا چې که دوی رښتیا بشر پال دي، نو باید د افغانـانو شـتمني ور خوشې کړي او د اقتصاد په برخه کې چې اسلامي امارت کومې پروژې را پیل کړي دي، باید ملاتړ یې وکړي.

دلتـه امنیـت ټینـګ سـوی، مګـر غربـي رسـنۍ او سـازمانونه بیـا وایـي، چـې پـه افغانسـتان کـې شـل ترهګریزې ډلې سته او په یو ډول نه یو ډول داعـش مـخ تـه – مخ ته کوي. په داسې حال کې چې داعش په پوره توګه ځپل سوی، تر دې چې عملیـاتي وړتیـاوې یـې لـه منځه تللې دي.

د افغانسـتان پـه اړه د نړۍوالـو اوسـنۍ پالیسـي نـه د افغانـانو پـه ګټـه ده او نـه د دوی. دوی دي لـه اسـلامي امارت سره د مثبت تعامل پر رامنځته کولو غور وکړي او له دې لارې دې هم خپلې ګټې خوندي کړي او هم دې افغانان پرېږدي، چې د خپل هیواد د پرمختګ لـه پـاره لاس په کار سي.

اداره

## د الله (ج) څخه د بېرې علامې

لیکوال: مفتي احمد "شریعتي"

قدرمنو لوستونکو!

د بېرې علامه د الله (ج) څخه په اوو شیانو کې ښکاره کېږي.

یعني کوم بنده چې د الله (ج) څخه بېرېږي، په هغه کې باید دغه اووه نښانې شتون ولري او د الله (ج) څخه بېره د انسان د اخروي کور د ښه جوړېدو لامل کېږي او کله چې په د نیوي کور کې د کور د خاوند اطاعت وسي، نو د اخروي کور د سختو پړاوونو څخه به په اسانتیا سره تېر سي.

هغـه کارونـه چـې بنـده لـره لازمـي دي، هغـه لاندې اووه نښانې دي چې بنده به یې په خپلو اساسي دندو کې راولي:

۱–ژبه ده:

بنده به خپله ژبه د دروغو، چغلګرۍ، بهتان او غیبت څخه منع کوي، بې معنی خبرې بـه نـه کوي او خپله ژبه بـه ماسوا د الله (ج) د ذکر، د قرآنکریم د تلاوت او د علم د مذاکرې څخـه پـه بل شي نه مشغوله کوي.

۲–د بنده زړه دئ:

ځکه چې زړه ځای د یقین او معرفـت دئ، کلـه چې بنده الله (ج) وپېژنـي، د بنـده د زړه څخـه عداوة، بغض، د ورونو ترمنځ حسـد لـه منځـه وړل کېـږي او پـه دې پـوه سـئ چـې حسـد د مسلمان نېک عملونه خوري او د زړه حـال نـه سمېږي، مګر په علم او عمل دواړو سره.

۳– نظر (لیده – کاته) د بنده دئ:

(یعنـي د بنـده د سـترګو لیـد لـورى)، بنـده بـه حرامـو شـیانو تـه نظر نـه کـوي، سـترګي بـه د نامحرمو ښځو د لیدلو څخه کښته کوي او هغو شیانو ته به نه ګوري چې کتل ورته روا نه دي، ځکـه چـې نبـي اکـرم صـلی الله علیـه وسـلم فرمایي:

د سـترګو دیـد یـو غشـی دئ، د غشـو څخـه د شیطان، چې په زهرو ککړ دئ، که چا د الله (ج) د بېرې له امله خپل دید د نامحرمو ښځو څخه وګرځـوئ او ښـځو د نـامحرمو سـړیانو څخـه وګرځوئ، نو د ایمان خوند به په هغه ورځ کـې پیدا کړي، چې له الله (ج) سره ملاقـي کېږي.

(رواه مستدرک علی الصحیحین)

امام غزالي (رح) فرمایلي دي: پر تاسو بانـدې لازم دي، چې د خپلو سترګو ساتنه بـه کـوئ، ځکه چې د سترګو نه ساتل، د ډېرو فتنو سبب جوړېږي. (شرح البخاري للسفیري)

۴– نس (خېټه) د بنده ده:

بنده بـه خپـل نـس د حرامـو څخـه نـه ډکـوي، حرام به نه خوري، ځکه چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: کومـه غوښـه چـې پـه حرامو لویه سي، هغه د اور لایقه ده.

(رواه سنن الدارمي و شعب الایمان)

۵– د بنده لاس دئ:

بنده به خپل لاس و حرامو ته نه اوږدوي، بلکې هغو کارونو ته به لاس اوږدوي، چې په هغو کې د الله (ج) اطاعت وي او پر چا به ظلم نه کـوي.

۶– د بنده پښه ده:

بنده به د الله (ج) په معصیت کې تګ نه کوي، بلکې د الله (ج) په فرمانبردارۍ کې به وي او د الله (ج) په رضا کې بـه تـګ کـوي، د عالمـانو او صـالحانو مجلسـونو تـه بـه ځـي، د موسـیقۍ او نـاروا مجلسـونو څخـه بـه ډډه کـوي.

۷–اخلاص دئ:

د بنده عبادت به د الله جل جلاله د رضا له پاره وي او بنده بـه د ریا او ځـان ښـوونې څخـه ډډه کوي، منافق غوندې به نه وي چې په ظاهره یو څه کوي او باطن کې بل څه.

که چیرې کوم بنده دا اووه سره علامې په ځان کې راولي او دا کارونـه تـر سـره کـړي، دی بـه د متقینو څخه وي، هغه متقین چې رب العزت جل جلاله د دوی یادونه کړې ده او لوړه مرتبه یې ورته ټاکلې ده.

## د تخیل قوت او قدرت

ښوونکي خپلو زده کوونکو ته وویل: "فکر وکړئ، تاسو د یوه شرکت او یا هم په ټوله کې د یوې ادارې مسـئول او مشران یاسـت، پـه همـدې اړه یـو څـه ولیکئ!" ښوونکي ولیدل، چې ټولو زده کوونکو سرونه کښته او په خپلو کتابچو کې په لیکلو اخته وه، خو یو ئې همداسي په خپلو افکارو کـې غرق، لاس تـر زنـې ناسـت او لـه کلکـین څخـه دبانـدې کتل. ښـوونکی نژدې ورغئ، پوښـتنه ئـې ځنـې وکـړه: «تـه ولـې څـه نـه لیکـې؟» زده کـوونکي وویل: «په تمه یم، چې منشي مې راسـې او ټایـپ ئې کړي» دې ته وایي د تخیل او تجسم قوت.

که انسان وکولای سي ۶۸ ثانیې پر خپلـو واقعـي غوښتنو تمرکز وکړي...

د ډېرو بریالیو کسانو په ځانګړي ډول د (جذب د قانون) په حوزه کې د (ایستر هیکس) د نظریو په ګډون په زړه پوري نـوري او دې تـه ورتـه نظریـې سته. دوی وایي: "که انسان وکولای سي، یوازې ۱۸ ثانیې پر خپلو واقعي غوښتنو فکر وکړي، نو د کائناتو په نړۍ کې به یو ستر زنګ وشرنګوي او پر اهتزاز به ئې راولي. دغه ډول توجه کـولای سـي، ټوله هستـي د همدې کس پر لـوري جـذب کـړي. که دغه ۱۸ ثانیې ۶۸ ثانیو ته ورسېدې، نوره نـو خبره خلاصه ده، هغه وخت بیا ټوله هستي داسي کېږي، چـې دغـه تمرکـز سوي فکـر تـه حللاره پیـداکړي. کـه هیلـي وي پـوره ئـې کـړئ او کـه پوښتني وي، جواب ئې کړئ. په لومړي سر کـې کېدای سي ۶۸ ثانیې تاسو ته بې معنی او کم عدد ښکاره سي، ۶۸ ثانیې یعني یوه دقیقه او ۸ ثانیې، د ډېرو خلګو په باور ۶۸ ثانیې تمرکز کول هیڅ کار هم نه دئ.

ښه نو تاسي هـم دغـه ډول فکر کـوئ؟ ډېره ښـه خبره ده، آزمایښت وکړئ. و به وینـئ، چـې لا بـه ۱۸ ثـانیې نـه وي پـوره سـوي، ستاسـو ذهـن بـه منحرف سوی وي او د ذهن له ژوري برخې څخه به مو نوي څه فکر ته راغلي وي، نو دغه څه باید جدي و نه نیول سي، له دې ډول لوبو څخه تېر سئ او د ژوند پر اصلي لارو چـارو فکـر وکـړئ، موږ همداسي عادت سوي یو، چې بې لـه فکـر کولو څخه د عادت له مخې ژوند کوو.

ژباړه: حمید الله "حمیدي"

## د یهودانو دسیسې

شپږمه برخه

لیکوال: محمد یحیی خان

ژباړه: سمیع الله "درانی"

د دوی د تفرقې په وجه یوه قبیلـه هـم دومـره طـاقتوره کېـدلای نـه سـوای، چـې سـیمه لـه مشـرکینو پاکـه کـړي، آخـر د دوی داوړو بـار سول، له دوی سره اوسېدل او د دوی منځ تـه ننوتل، بني اسرائیلو اول دا تاوان وکړ، چې په دې قومونو کې ټول اخلاقي مفاسد، د فحاشۍ او عیاشۍ طریقې، د شرک او بدعت رسـمونه په دوی کې رواج او دننه سول. دوهم تاوان یې دا وکړ، د کومو قومونـو چـې ښـاري ریاسـتونه ول، هغه یې پرې ایښې وو، هغوی او فلستیون چې د هغوی یـو سـیمه پټـه پاتـه وه، یـو ځـای سول. د بني اسرائیلو خلاف یې یو محاذ جـوړ کړ، په وار– وار حملو سره یې د فلسطین لویه حصـه ونیولـه، حتـی لـه دوی څخـه د دوی د معبـود، د وعـدې صـندوق (تـابوت سـکینه) پوري لاور څخه یووړل سول، په وروستیو کې بني اسرائیلو ته د حضرت موسی (ع) هـدایت ور په یاد سو او هغو ته د یو فرمان روا مطابق، د یـو متحـد سـلطنت اشـد ضـرورت و، د دې سلطنت درې فرمانونـه راغلـي وو، د دغـو درو فرمان راوړونکو حضرت طالوت (ع)، حضرت داؤد (ع) او حضـرت سلېمان (ع) خپـل کـار خـلاص کـړ، چـې بنـي اسـرائیلو تـر حضـرت موسـی (ع) وروسـته نامکملـه پرېښـوول. له بائبل څخـه معلومېږي، چـې د طـالوت تـر عهـد پـوري صـیدا، صـور، دور، مجـده، بیـت شان، جزر او یروشلم (اوسنی بیت المقدس) مسلسل د مشرکینو پـه قبضـه کـې ول، د دې ښارونو مشرکانه تهذیب پر بني اسرائیلو زیات اثرات واچول، خاص بیا بني اسرائیلي قبائل پر سرحدونو فلسـتیون، ادومیـون، مـوآبیـون او عمونیون طاقتور ریاستونه هم بدستور قـائم ول، هغو وروسته په بار– بار حملو سره ډېـره سیمه له اسـرائیلو څخـه ونیولـه، حتـی خبـره دې ځای ته ورسېدله، چې له فلسطین څخه د بني اسرائیلو د وتلو نوبت راغلی، کـه پـر دغـه وخـت الله (ج) د طـالوت پـه قیـادت اسـرائیل جمع کړي نـه وای، نـو پـه دنیـا کـې بـه ذلیـل ترین او پست ترین قوم وای او همداسي به پاته وای.

(د اسرائیلو د فساد اوله لویه دوره)

د حضـرت سلېمان (ع) تـر وفـات وروسـته پـر بني اسرائیلو یووار بیا د دنیا محبت غالب سو، د ډېرو پیسو او سلطنت له پاره یې په خپل منځ کې جنګونه سره وکـړل، پـه آخـر کـې یـې دوه سلطنتونه قایم کړل. اول شمالي فلسـطین او شرقي اردن د بني اسرائیلو په قبضه کې راغلل او دوهم د جنـوبي فلسـطین او ادوم سـیمي د عـامو (یهـودو) پـه قبضـه کـې راغلـل، د اولـې پاچهۍ دارالخلافه (سامریه) نومی ښار و او د دوهمـې پـاچهۍ دارالخلافـه (یروشـلم) ښـار وګرځېدی.

بیـا د دواړو سـلطنتونو پـه مـنځ کـې لـه اولـې ورځـې څخـه تـر آخـره پـوري سـخت جنګونـه شروع ول، یو د بل د ماتېـدو هڅـې کـولې، د اسـرائیلي پـاچهۍ مشـران او عـوام ډېـر ژر د همسـایه قومونـو د مشـرکانه عقیـدو تـر اثـر لاندې راغلل، حضرت الیاس او حضرت الیسع علیهما السلام د دې سېلاب د بندېدو له پـاره هر ډول کوښښونه وکړل، خو کومه نتیجه یې ور نه کړل.

آخر الله (ج) آشوری قوم ورباندې مسلط کړ، د عـذاب پـه ډول هغـوی پـر لـه پسـې حملې پر کولې، خو بالاخره په (۷۲۰) قبل مسیح کې د آشوریانو نامتو پاچا "سارکون" سامریه فتحه کړه او د اسرائیلو سلطنت یې ور خـتم کـړ، تـر دې وروسته یې د یهودو پر پاچهۍ هم حملې شروع کړې، څو ښارونه یې ورونړول، یهود یې هم آرام کړل او مالیه یې پر کښېښووله.

بیا په (۵۸۷) قبل مسیح کې د بابل پاچا بخت نصر یوه سخته حمله پر وکړه، لکه عذاب چې پر دوی نازل سو، د یهودو ټول لوی او کوچني ښارونه یې له خاورو سره برابر کړل، یروشلم او هیکـل سـلېماني یـې داسـي ونـړول، چـې دېوالونه یې لا هم پاته نه سول، د یهودو ډېرې کسان یې له هغه ځای څخه و ایستل، تیت او پرک یې کړل.

نور بیا...

و برای امام جایز است که از باب تعزیر ظرف های شراب را شکسته و مکان های فروش شراب را آتش بزند و این بر حسب مصلحتی است که به تشخیص امام باز می گردد، تا اینکه از نوشیدن و ترویج آن جلوگیری شود.

۱ – از جابر روایت است که مردی از جیشان یمن نزد رسول خدا آمد و از ایشان درباره یی خمری که در سرزمین شان از ذرت و به نام «مزر» ساخته می شود، پرسید. رسول خدا فرمود: «آیا مست کننده است؟ گفت: آری! رسول خدا فرمودند: هر مست کننده ای حرام است و خداوند عهد نموده که خورنده یی آن را از طینه الخبال بنوشاند. اصحاب پرسیدند: ای رسول خدا! طینه الخبال چیست؟ فرمود: «عرق اهل دوزخ یا عصاره یی دوزخیان که از بدن شان فرو می ریزد».

۲ – از ابن عمر روایت است که رسول خدا فرمودند: «کسی که در دنیا شراب بنوشد و پس از آن توبه

# بررسی نوشیدن شراب یا خمر از نظر اسلام

ترتیب کننده: پوهیالی سمونیار همایون "وقار"

حصه دوم و آخر

نکند، در آخرت از آن محروم می شود».

اجماع: از ابن مسعود روایت است که گفته است: "من نیز مانند شما حاضر بودم، که نبیذ حرام شد و از آن اطلاع دارم و شاهد دوباره حلال شدن آن بودم، من آن را بخاطر سپردم و شما آن را فراموش کردید".

از ابوموسی روایت است که گفت: "پیامبر صلی الله علیه و سلم من و معاذ بن جبل را به یمن فرستاد گفتیم. ای رسول خدا! درآنجا دو نوع مشروب هست، که از گندم و جو ساخته مي‌شوند، که یکی را (المذر) و دیگری را (البتع) می نامند. آیا از آنها ننوشیم!؟ پیامبر صلی الله علیه و سلم گفت: "اشربا و لا تسکرا [از آن بنوشید ولی مست نشوید]". که آن را نیز طحاوی ذکر کرده است... از اینگونه اخبار ضعیف در این باره یاد کرده اند.

اما استدلال نظری و منطقی آنها اینست که خداوند در قرآن علت تحریم (خمر) را مانع بودن آن از ذکر خدا و سبب شدن آن برای ایجاد دشمنی و کینه در بین مردم ذکر کرده است، که مي‌فرماید: "إنما یرید الشیطان أن یوقع بینکم العداوة والبغضاء فی الخمر والمیسر، ویصدکم عن ذکر الله وعن الصلاة... والایه"[2].

مي‌کرد و پیامبر صلی الله علیه و سلم آن روز و فردا و پس فردا نیز تا شب سوم از آن مي‌نوشید، سپس دستور می‌داد که آن را به خادم بدهند یا آن را بریزند".

آبوداؤد گفته است یعني بعد از سه روز آن را نگاه نمي‌داشت چون احتمال فساد و تخمیر در آن می رفت و برای اینکه بیشتر نماند فرمود آن را به خادم بدهند یا بریزند".

نتیجه گیری: درباره طهارت مسکرات دو دیدگاه وجود دارد، دیدگاه مشهور قائل بر نجاست مسکراتند و ادله هایی با توجه به قرآن، سنت، اجماع و عقل ارائیه می کننده. فقیهانی چون صاحب جواهر، شیخ انصاری، شیخ مفید، سید مرتضی از قدما و از متاخرین فقیهانی چون آیات عظام امام خمینی، خویی، منتظری، وحید خراسانی، فاضل لنکرانی و... بر این نظرند. دیدگاه شاذ مبنی بر طهارت مسکرات، با نقد و رد ادله های گروه مشهور و تبیین مستنداتی چون اصل اباحه اشیا، اصل استصحاب، قاعده اصالت طهارت و روایاتی دال بر طهارت مسکرات به این موضوع پرداخته اند. محقق اردبیلی، فیض کاشانی، محقق سبزواری و متأخرینی مانند آیت الله صادقی تهرانی در این گروه قرار می گیرند.

نظر نگارنده با توجه به مباحث علمی مطرح شده و ادله های فقهی مذکور، طهارت مسکرات به حقیقت نزدیکتر می باشد.

# د کوچنیانو مخ ته سګرېټ مه څکوئ!

حشمت الله "مجددي"

زمونږ په ټولنه کې نن – سبا د کوچنیانو مخ ته سګرېټ څکول، یو ناوړه عمل ګرځېدلی دئ. زمونږ په زیاتو کورونو کې پلرونه د خپلو کوچنیو اولادونو مخ ته سګرېټ څکوي، دود یې د تنفس کولو پر وخت د کوچنیانو تر سږو رسېږي او د وخت په تېرېدلو سره کوچنیان په سګرېټو داخته کېدو خطر له ځان سره لري.

د کورنۍ مشرانو داسې کړنې د کوچنیانو ژوند په خطر کې اچوي. دوی په راتلونکي کې په دې باوري کېږي چې کوم عمل زما پلار کوي، هغه به زه هم کوم.

نن چې کوم ځوانان په نشه یي توکو روږد دي، دا هغه د پرون کوچنیان دي چې پلرونو به یې د دوی مخ ته نشه یي مواد څکول.

ما شخصاً په خپلو دوستانو کې ډېر پلرونه لیدلي، چې کوچنیان یې په غېږ ناست وي، د خپل کوچني په شتون کې یې سګرېټ لګولی وي او ښه یې په خوند څکوي.

مونږ د پوهنتون په شروع کې د خوشحال پېژندنې یو تدریسي مضمون درلودی، په هغه کې د کوچني په اړه د خوشحال خان خټک، جان لاک چې (بریتانوي فلیسوف و) د چینایانو نظرونه د کوچنیانو د تربیې او روزنې په اړه داسې وو:

خوشحال خان د کوچني ماغزه سپین کاغذ ته ورته بللي دي، چې کله کوچنی له موره پیدا سي، هغه وخت د ده دزده کړو دوره پیل سي او هر عمل یا کړنه ډېر ژر مغزو ته سپاري. تر خوشحال وروسته د کوچني په هکله جان لاک هم ورته نظر ورکړی دئ.

چینایانو بیا هغه وخت داسې یوه نظریه درلوده چې کله کوچنی نړۍ ته راغی، نو دوی به یو کلن بللی. یو کلن په دې معنی چې د کوچني تربیه د مور په نس کې پیلېږي.

زمونږ په زیاتو کورونو کې د کوچنیانو اساس ته خاصه توجه نه کېږي. دوی داسې فکر لري، چې ګواکي کوچنی په هیڅ نه پوهېږي.

داروا پوهنې له نظره، د کوچني ذهني قوه تر لویانو ډېر تېز کار کوي. نوي زېږېدلي کوچنیان هر عمل په ډېرې چټکۍ سره دماغ سپاري.

مونږ باید داسې عمل چې پایله سمه نه وي، د کوچنیانو مخ ته و نه کړو. کوچني ته له پیدایښته داسې سالمه روزنه او تربیه ورکړو، چې په لویوالي ښه ثمه ځني ولرو.

سګرېټ څکول نن – سبا ځوانانو ته په فېشن کې ورپاته دي. دې ناوړه عمل دونې غرق کړي، چې حتی ډېری خو د چرسو څکول، لا د اولادونو مختته عیب نه بولي.

یو ځای روان وم، دوه نفره مې پر موټر سایکل سپاره ولیدل، د دوی څخه یوه لګېدلی سګرېټ وغورځاوه. پر لګېدلي سګرېټ کوچنی پېښ سو، له مځکې یې ور واخیستی، خولې ته یې کړ او دود یې ځني کش کړ.

فکر وکړئ! سبا همدا کوچنی د ځوانۍ پړاو ته رسېږي، هغه وخت به بیا له هیڅ نشه یي دود څخه مخ نه اړوي.

کوچنی په کوچنیوالي د درختي هغه لنده لښته ده، چې هري خواته در کس العمل ده ته مثبت فکر ورپېچکاري کوي او هر منفي عکس سره کړېدلای سي. ستا هر مثبت عالعمل دي منفي فکر ورپېچکاري کوي.

یو کار داوکړئ! چې یو وار خپل د کور کوچنیان ښه په دقت مطالعه یعنې تر څېړنې لاندې ونیسئ. کرار – کرار به ډېر حقیقتونه درته ښکاره سي. د خپل کور کوچنیانو ته په سپکه مه ګورئ او مه هم ډېر توند ورسره ځئ، نرمي ورسره کوئ او په ښه ښایسته لهجه یې پوهوئ.

د کوچنیانو و مخ ته ناوړه حرکتونه مه کوئ او مه هم خرابه لهجه ور سره کاروئ، چې سبا خدای مه کړه دوی هم د دغسې کړنو ښکار نه سي.

# الله (ج) د مظلوم ملاتړ کوي

نعمت الله "شاکر"

الله (ج) د مظلوم ملاتړ کوي، که یو څه هم څه وخت وروسته وي، حتی مظلوم داسې لوړو موقفونو ته رسوي، چې هغه ظالمان به ورته احتیاج وي، په دې شرط چې مظلوم صبر او تقوا وکړي.

لکه دلته چې یوسف (ع) ته د هغه ورونه د سوالګرو په توګه راغلل، په عجز او زاریو یې ورته وویل، مونږ متضرر سوي یو او د غذایي موادو قیمت مو هم لېږ راوړی دئ، مونږ ته پوره پیمانې راکړه، پر مونږ احسان وکړه بې له شکه چې الله (ج) صدقه ورکوونکو ته پوره بدله او اجر ورکوي.

سبحان الله و بحمده!

بې له شکه چې الله (ج) انتقام اخیستونکی او حکیم ذات دئ، که څوک یوازې د یوسف (ع) په کیسه او قضیو کې فکر وکړي، نو دا به ورته معلومه او ثابته سي، چې الله (ج) په څونه دقیقو او قوي پلانونو سره یوسف (ع) واک ته ورساوه او هغه کسان یې ورته اړ او محتاج کړل، چې د هغه د هلاکت هڅې یې کولې.

یادونه: د قرآني کیسو څخه عبرت اخیستل، د مسلمان د بریا راز دئ.

نوټ: د سورة یوسف د ۸۸ نمبر آیت ترجمه او تفسیرونه دي وکتل سي.

شعري او آدب

# د طلوع ځلانده ډیوه

## غزل

**حیات خان "همت"**

ستا د تلو وروسته کیسه داسې ده چې ښه نه یمه
اوس چې په ځان کې هر څه وګورم خوزه نه یمه

★✿★

شکر د وخت د زلیخا زړګی خو روغ پاته دئ
شکر په دې چې د یوسف غوندې ښایسته نه یمه

★✿★

د یار د مخ په غورنچه کې سره لبان او شونډان
من او سلوا ده ربه! ستا خوبه مېلمه نه یمه؟

★✿★

د استسقا لمانځه ته ځم یم بې سایوانه روان
زه مې پر خپلو دعاګانو هم ډاډه نه یمه

★✿★

د عشق د لاسه د څراغ رڼا مې هم سوځوي
هغه چې سرې سکروټې خوري "**همت**" هغه نه یمه

## غزل

**استاد نور احمد "قرآن مل"**

د شنه عرش تر سیورې لاندې ایښول دي قدمونه
له فائقه اورېدله ستا پر لوري انوارونه

★✿★

ملکوت غېږ کې جمال سوې پلوشې دي را خپرې وې
د طه یس په وصفه رغېدله بیمار زړونه

★✿★

د اسراء بعبده په ترانه باندې د مسازه!
پر مخلوق د رحمت پوښ سوې لایزال لېږل درودونه

★✿★

فرشتو صفوف تیار کړل سفر خوا د معلی ته
"**قرآن مل**" زړګی به چوي که یې خپل کړل براءتونه

## غزل

**رحمت الله "شهکار"**

ته خنګه و پیتاوي ته د لمر په خوب بیده ئې
راویښ سه ولې داسې ناخبر په خوب بیده ئې

★✿★

عراق، شام، فلسطین او په اقصی باندې څه حال دئ؟
ته کور کې په آرامه پر بستر په خوب بیده ئې

★✿★

رمه باندې ګډ سوي دي بیا تور او خړ لېوان دي
شپونکیه! ته قرار د غره پر سر په خوب بیده ئې

★✿★

اثر چې د جنون نه دئ نو څه دئ راته وایه
د ژمي یخ موسم کې ته بهر په خوب بیده ئې

★✿★

یتیمه چې در ګورمه دا زړه مې سخت دردېږي
پوهېږمه د څوور ځونهر په خوب بیده ئې

★✿★

د حق آواز اوچت کړه مړاوي زړونه راژوندي کړه
کونګی سې چوپه خوله چې پر ممبر په خوب بیده ئې

★✿★

ګرېوان دي دئ شلېدلی سر ببر شونډي دي پرې دي
"**شهکاره**!" بیا له چانه مرور په خوب بیده ئې

# Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! ستاسو څخه په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلي پاڼي بې ځایه و نه غورځوئ!

مسئول مدیر: بریالی "فیضي"
د تصحیح مسئول: بسم الله "غرنی"
کمپوز او ډیزاین: نصیراحمد "صابر"
د مدیریت شمېره: ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزیع مدیریت شمېره: ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پته: علامه حبیبي واټ – اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د برېښنالیک پته: Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 | Issue: 37 | Established in 1300 Hijri


# افغان اعلانونه

## په کرایه یې ور کوي

د ګمرک ریاست اړوند:

یو باب د پرچون غرفه چې د سپین بولدک ولسوالۍ د ګمرک آمریت په داخل کې موقعیت لري. یاده په کرایه د قرارداد په ډول ور کول کېږي. هر هغه څوک چې یې په کرایه غواړي، د ۱۴۰۲ ل کال د وږي میاشتې د څلورمې نېټې څخه بیا د یادې میاشتې تر پنځه ویشتمې نېټې (د یو ویشتو ورځو) پورې دې خپل غوښتنلیکونه د مستوفیت ریاست د املاکو لوی مدیریت ته وسپاري او یاده داوطلبي د وږي میاشتې پر شپږ ویشتمه نېټه، د یکشنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې د تعین سوي هیئت په حضور کې د املاکو په عمومي مدیریت کې تر سره کېږي، شرطپاڼه کتلای سي او تضمین نغداً اخیستل کېږي.

## په اجاره یې ور کوي

د نخي نساجي دولتي شرکت د ښورانداړم خپله مځکه، د درو کلونو له پاره په اجاره ور کوي. هرڅوک چې یې د اجارې خیال ولري، خپل غوښتنلیکونه دې د یاد ریاست د خدماتو عمومي مدیریت ته وسپاري او خپله دې د وږي (سنبلې) میاشتې پر شلمه نېټه حاضر سي.

## اعتبار نه لري

بشارت خصوصي ښوونځی جواز چې نمبر یې (۵۹۷۷۳) دئ، انفرادي جواز چې څښتنه یې حکیمه شریفي د حاجي فضل احمد لور ده، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته اعتبار نه لري.

## قرارداد کوي

د کندهار ولایت د تخنیکي او مسلکي زده کړو آمریت غواړي، چې د (۸۰۰۰۰۰) اته سوه زره افغانیو په ارزښت، د قرطاسیې، فرنیچر، البسې او فرش سره قرارداد له یو شرکت سره وکړي. د قرارداد غوښتونکي دي د ۱۴۰۲ ل کال د وږي میاشتې د شپږمې نېټې څخه بیا د همدې میاشتې تر دیارلسمې نېټې پورې د تخنیکي او مسلکي زده کړو آمریت ته مراجعه وکړي.

## له انجینري پوهنځي څخه ۲۵۷ تنه فارغ سول

د کندهار پوهنتون د انجینري پوهنځي له څلورو څانګو سېول، مهندسې، انرژي، اوبه او چاپېریال څانګو څخه ۲۵۷ تنه فارغ سول، چې له جملې څخه یې د سېول له څانګې څخه ۱۱۵ تنه، انرژي ۶۳، مهندسي ۳۰، اوبه او چاپېریال څانګې څخه ۴۵ تنه فارغ سول.

د دوشنبې په ورځ ورته په یو خصوصي سالون کې مراسم نیول سوي وو، چې په کښې د کندهار پوهنتون رئیس مولوي اکرم شاه عاصم، مالي او اداري مرستیال مولوي عبدالستار حقاني، د بېلابېلو پوهنځیو رئیسانو، استادانو، علماء کرامو او د فارغ سوو محصلانو د کورنیو غړو برخه اخیستې وه.

په مراسمو کې د انجینري پوهنځي استاد پوهنمل عبدالواحد واحدي وویل، تر دې مهاله یې د انجینري پوهنځي څخه ۱۸۰۰ تنه محصلان په څلورو رشتو کې فارغ کړي دي.

د کندهار پوهنتون رئیس مولوي اکرم شاه عاصم د فارغ سوو انجینرانو څخه وغوښتل، تر څو په ګډه د نظام، هیواد او ټولني پر مختګ ته ملا وتړي او عصري علوم یې د انبیاء علیهم السلام تګلاره و بلله.

## له قومونو سره د همږغۍ غونډه جوړه سوه

په پنجشېر ولایت کې د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو وزارت له لوري له قومونو سره د همږغۍ غونډه جوړه سوه.

یاده غونډه د مرکز او ولسوالیو پر قومي مشرانو، ځوانانو او دیني عالمانو سربېره، د یاد وزارت د جرګو او قبایلي چارو د همږغۍ مرستیال ملا عبدالخالق عابد، د جرګو رئیس شېخ حضرت ولي حقاني، مل پلاوي، د پنجشېر والي محمد آغا حکیم، ډېرو مسئولینو او درسینو استازو په ګډون جوړه سوې وه، چې په کښې د ځایي خلکو د ستونزو د حل او د ملي یووالي د ټینګښت له پاره ویناوي وسوې.

د پنجشېر والي غونډې ته په خپلو وینا کې وویل، افغانان یوازنی ملت دئ، چې د چا غلامي نه مني او په هر دور کې د اسلامي نظام تر چتر لاندي پر یووالي راټول سوي دي.

هغه له مېشتو قومونو څخه مننه وکړه چې د اسلامي نظام تر څنګ ولاړ دي.

ورته مهال د قومي مشرانو له ډلي څخه څو تنو د خبرو په جریان کې د پردیو د تبلیغاتو یادونه وکړه او ویې ویل، ټول افغانان نور له جنګه ستړي سوي دي او د افغانانو د روښانه راتلونکي له پاره په کار ده چې نور د هیچا په وعدو او خبرو خطا نه وزي.

دوی له اسلامي امارت څخه خوښي وښووله، چې د خلکو د امنیت په ساتنه کې یې پوره پاملرنه کړې ده.

په غونډه کې د جرګو او قبایلي چارو د همږغۍ مرستیال وویل، خپلواکي او امنیت په خپله نه راځي، بلکي دا د همدې ولسونو او نظام لاسته راوړنه ده.

د عابد په قول، د دې هیواد د هري ژبې، هر ولایت او ولسوالۍ خلک دوی ته یو شان ارزښت لري.

نوموړي قومونو ته په اشارې سره وویل، د افغانستان متدین او باتور خلک به هیڅ قدرت ته اجازه ور نه کړي، چې د دې هیواد عنعناتو او قربانیو ته په سپکه سترګه وګوري.

## (۱) مخ پاته: ازبکستان د قوش تېپې کانال د کارونو د پرمختګ په برخه کې مرستې...

غوښتنه وکړه.

په خبرپاڼه کې همدارنګه ویل سوي، چې د ازبکستان ځانګړي استازي عصمت الله ایرګاشیف له افغانستان سره د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ په برخو کې همکارۍ ته د خپل هیواد د چمتووالي په اړه خبري وکړې او زیاته یې کړه، هیواد یې له افغانستان سره د کرهنې په ځانګړې ډول، د اصلاح سوو غنمو او وریجو د کښت په برخه کې مرستې ته چمتو دئ.

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت په خبرپاڼه کې ویل سوي، د ازبکستان د اوبو لګولو وزارت لومړي مرستیال عظیم جان نظروف هم د اوبو لګولو او انرژۍ د څېړنې او تولید په برخو کې د خپل هیواد د همکاریو په اړه خبري وکړې او زیاته یې کړه، ازبکستان د قوشتېپې کانال د کارونو د پرمختګ او د افغانستان د خاوري په اړه د څېړنو په برخه کې مرستې ته چمتو دئ.

ټاکل سوې ده، چې دواړه لوري او د دوی تخنیکي استازي په نژدې راتلونکي کې د کرهنې او مالدارۍ په برخه کې د همکاریو د پراخولو په موخه یو وار بیا سره وګوري او خبري وکړي.

## (۱) مخ پاته: د کندهار ښاروالۍ له لوري پر بېلابېلو رغنیزو پروژو...

د سیمې ټول ولس باید همکاري ور سره وکړي.

د بل خبر له مخې په کندهار کې د ۶۹۰ متره په اوږدوالي د دوو کوڅو او د ۵۰ سانتي متره په جګوالي د یوې ویالې د سنګ کاري چاري بشپړي سوې.

د کندهار ښاروالۍ ویاند سیف الله عاصم د یکشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته وویل، د یادو رغنیزو پروژو چاري د ۱۴ ناحیې اړوند، د شاهي سالون څنګ ته څو میاشتې مخکې پیل سوي وې، چې پای ته ورسېدې او ګټې اخیستنې ته وسپارل سوې، چې ور سره لسونو کورنیو ته په تګ – راتګ کې اسانتیاوې هم رامنځته سوې.

همداراز په کندهار کې د ۱۵۳ زره امریکایي ډالرو په لګښت، د درو کوڅو د کانکرېټ کولو چاري پیل سوي دي.

د ښاروالۍ ویاند سیف الله عاصم باختر خبري آژانس ته وویل، د کندهار ښاروالۍ له خوا د نهمې ناحیې اړوند، په غني خان مېنه کې د ۱۵۳ زره امریکایي ډالرو په لګښت د درو کوڅو د کانکرېټ کولو او د یو پلچک جوړولو چاري پیل سوي دي.

د عاصم په وینا، د چارو د پیل په مراسمو کې یې د ښاروالۍ مرستیال مفتي قدرت الله الوصال او د سیمې قومي مشرانو برخه اخیستې وه.

د سیمې اوسېدونکو د افغانستان اسلامي امارت له مسئولینو مننه وکړه، چې د ولس اساسي ضرورتونه پوره کوي.

## (۱) مخ پاته: ۸۲۷ تنه د سپین بولدک له لارې هیواد ته...

۸۱۵ تنه کېږي، بیرته خپل هیواد ته په خوښۍ راستانه سوي دي.

د مومن آغا په وینا، یادې کورنۍ ثبت او د مرستو تر لاسه کولو له پاره یو شمېر مؤسسو ته ورپېژندل سوي دي.

## (۱) مخ پاته: وسلې پلورونکي او یو شمېر غله نیول...

د امنیې قومانداني ویاند حافظ صابر ویلي، د دوولسمې امنیتي حوزې ځواکونو یاد غل هغه مهال نیولی دئ، چې د یو سوداګر څخه یې د وسلې په زور دوه سوه زره پاکستانۍ کلداري اخیستي وې، چې د امنیتي ځواکونو له خوا د همدې غلا پر مهال ونیول سو.

له یاد سوي غله سره وسله او غلا سوي ټیلیفونان هم نیول سوي دي.

همداراز په کندهار کې امنیتي ځواکونو یو تن د موټر سایکلونو د غلا په تور نیولی دئ.

د شنبې په ورځ د امنیې قوماندانۍ ویاند حافظ صابر باختر آژانس ته وویل، امنیتي ځواکونو په یوولسمه حوزه کې هغه غل نیولی چې یوه عراده موټر سایکل یې غلا کړی وو.

یاد غله اقرار کړی، چې تر دې د مخه یې هم یو بل موټر سایکل غلا کړی و او له یاد غل سره یوه عراده نیول سوی موټر سایکل خپل مالک ته وسپارل سو.

د موټر سایکل څښتن د اسلامي امارت له مسئولینو څخه مننه وکړه، چې پر وخت یې اقدام کړی دئ.

د صابر په وینا، غل د لا ډېرو تحقیقاتو له پاره امنیې قوماندانۍ ته سپارل سوی دئ.

همدارنګه د امنیې قوماندانۍ ویاند ویلي، د یوولسمې امنیتي حوزې ځواکونو هغه دوه تنه غله نیولي، چې سره زر او یو میلیون او سل زره کلداري یې غلا کړي وې.

د نهمې امنیتي حوزې ځواکونو هم درې تنه غله نیولي، چې سل زره افغانۍ، یو میلیون څلور سوه زره کلداري او نور قیمتي توکي غلا کړي وو.

همدارنګه د کندهار ولایت په سپین بولدک ولسوالۍ کې یو تن د نشه یي توکو قاچاق کوونکی نیول سوی دئ.

د کندهار د امنیې قوماندانۍ ویاند د دوشنبې په ورځ باختر آژانس ته ویلي، د سپین بولدک ولسوالۍ د کمیسارۍ امنیتي ځواکونو له خوا د یو لړ کشفي معلوماتو پر اساس، یو تن د پنځه نیم کېلو ګرامه نشه یي توکو سره نیول سوی دي.

د هغه په خبره، نیول سوی کس به قضایي ارګانونو ته وسپارل سي.

## (۱) مخ پاته: په کندهار کې د بدني ښکلا سیالۍ تر سره...

یادې سیالۍ پر دوو کټګوریو (لویانو او ځوانانو) تر سره سوې، چې د لویانو په کټګورۍ کې عزیزالله او ځوانانو کټګوریو کې نجیب الله لومړي مقامونه خپل کړل.

## (۱) مخ پاته: ۱۶ ټانکره بې کیفیته تېل ایران ته وګرځول...

ته ویلي، د شېخ ابونصر فراهي بندر کې ۱۶ ټانکره بې کیفیته تېل (ډیزل) چې د افغانستان د سټنډرډ ملي ادارې له سټنډرډونو سره یې سمون نه درلودی، بیرته ایران هیواد ته وګرځول سول.

ابرار اغا زیاته کړه، هیچا ته به د بې کیفیته توکو د واردولو اجازه ور نه کړل سي.

هېره دي نه وي، چې تېره اوونۍ هم د دغه بندر له لارې ۹ ټانکره بې کیفیته تېل ایران ته ګرځول سوي وو.

## ۱۱۰۰۰ په دوا مشبوع سوي پشه خانې ووېشل سوې

د کندهار ولایت په ښوراوک ولسوالۍ کې ۱۱۰۰۰ په دوا مشبوع سوي پشه خانې ووېشل سوې.

د عامې روغتیا ریاست ویاند ډاکټر عبدالمنان نادري د دوشنبې په ورځ باختر آژانس ته وویل، د عامې روغتیا ریاست او باران مؤسسې په ګډه په ښوراوک ولسوالۍ کې چې ډېر کسان په کښې په ملاریا ناروغۍ اخته سوي وو، د UNDP مؤسسې په همکارۍ ۱۱۰۰۰ په دوا مشبوع سوي پشه خانې ووېشلې.